

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډېټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** اتم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۹ هجري شمسي

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړليک

# ۱ لوست



## د سیايي په ټکو انځور
## کله مو د آسمان په وریځو کې آشنا شکل لیدلی دی؟

څو څاڅکي جوهري رنګ د یوه کاغذ پر مخ واچوئ، بیا خپل کاغذ قات کړئ او په لاس لږ څه زور پرې وکړئ. وروسته بیا کاغذ خلاص کړئ، هغو نقشو ته په ځیر سره وګورئ او د کاغذ پاڼه له څو زاویو څخه وګورئ چې په هغو کې آشنا نقشونه او انځورونه پیدا کړئ. کله چې رنګونه وچ شول د مناسبو خطونو په ور زیاتولو سره هغه شکل چې تاسې په کې لیدلی دی بشپړ کړئ او هغه نورو ته وروښیئ.



( ۱- انځور ) د سیايي هر ټکی چې د کاغذ پر مخ پرېږدئ، کاغذ قات کړئ چې ورته شکل د کاغذ په بله برخه کې رامنځته شي.



(۲ انځور) د کاغذ پاڼه په تورو لکو ډکه کړئ او صبر وکړئ چې وچ شي.



(۳ انځور) کاغذ هرې خواته وڅرخوئ او وګورئ چې د خپلې خوښې شکلونه جوړ کړې.

بیاهم انځورونو ته په ځیر وګورئ او نوي نقشونه پیدا کړئ او د خطونو په اضافه کولو نوی شکل انځور کړئ. دې کار ته ادامه ورکړئ چې له ټولو ټکو یا خاپونو څخه انځورونه جوړ شي.





**تمرین**

۱- د رسم شوو شکلونو په اړه په خپل منځ کې سره وغږیږئ.

۲- په خپل کورکې د اوبو پاشلو (آب پاشی) په وخت کې کوم ناڅاپي انځورونه د ځمکې پر مخ وینئ، هغو ته پام وکړئ او وګورئ چې کوم اشنا شکلونه په کې لیدل کیږي.

# ۲ لوست

## په اسلامي دوره کې د افغانستان د هنر له تاریخ سره آشنایي.



**پوهیږئ چې له اسلام څخه مخکې او وروسته د افغانستان هنرونه سره څه توپیر لري؟**



په افغانستان کې د غزنویانو په دوره کې اسلامي ودانیو ډېره وده او پراختیا وموندله. د تاریخي منابعو په قول د غزنویانو دوره د ودانیو، شکلو، ماڼیو او لویو جوماتونو دجوړېدو دوره بلل شوې ده د سلطان محمود غزنوي او د ده د زوی (سلطان مسعود) د واکمنیو په زمانه کې په غزني او هرات کې رامنځته شوې ده. اوس د دې ودانیو یوازې یوه برخه په ځای پاتې ده. د دې ابداتو تر څنگ په غزني کې د (آییني) ماڼۍ قصرونه او منارونه او په هلمند کې لښکري بازار د یادولو وړ دي. د سلجوقیانو په دوره کې د امیرانو او واکمنانو په هڅونه او د ځینو وزیرانو، لکه: نظام الملک په اشاره ډېرې لویې ودانۍ جوړې شوې دي. غوریانو هم ډېرې لویې ودانۍ جوړې کړې وې چې یوه بېلگه یې جام منار دی چې ٦٤ متره لوړوالی لري، دا منار څکه د ډېر ارزښت وړ دی چې د ښکلا لپاره یې په خښتو جوړ کړی او په کوفي خط پر هغو ځینې لیکنې شوې دي دا د افغانستان له ډېرو مهمو اثارو څخه شمېرل کېږي او د نړۍ د فرهنگي میراثونو په لېست کې هم ثبت شوي دي.

د هرات جامع جومات چې د سلطان غیاث الدین غوري له خوا یې په هرات کې د بنسټ ډېره کېښودل شوه، خو د بشپړېدو کار یې د هرات د تیموریانو تر دورې پورې و رسیده.



( ۲ انځور ( د جام په منار ليکني )

د بلخ په غرب کې د بابا حاتم زيارت چې په هندسي انځورونو، ګلانو، بوټو، دګچ کاريو د ډيزانونو په ښکلا، ليکنو او د قابونو په ښکلا ښکلی شوی لرغونتيا يې له ۵۳ هـ ق کال څخه پخوا ښودل شوې ده، په دغې دورې کې د ښکلا لپاره ودانيو جوړولو زيات رواج درلود.



( ۳ انځور) په افغانستان کې د جام منار ښکلاوې او کتيبې چې په سوره مريم پورې اړه لري.



( ٤ انځور ) د بادغيس په قلعه نو کې د (شاه شهيد ) په کنډوالو کې ځينې کاشي کارئ په شپږمه او اومه هجري پيړۍ پورې اړه لري.

د ودانیو جوړولو بهیر د چنګیزیانو د یرغل په دوره کې په ټپه ودریده، نو ځکه په دې اوږده دوره کې له تزئیني آثارو څخه نور څه پر ځای پاتې نه شول. له هغوی وروسته د تیموریانو دوره د لویو ودانیو او په هغې کې د اسلامي هنرونو د انځورونو له پلوه یوه ډېره ځلانده، بډایه او غني دوره وه. په ځانګړې توګه په هرات کې د ( شاه رخ) میرزا او (سلطان حسین بایقرا دورې او په افغانستان او هند کې د بابر دورې د یادولو وړ دي.

د دې دورو آثار په نهمه هجري پېړۍ کې دګوهرشاد بیګم زیارت، د سلطان حسین بایقرا زیارت، په لسمه هجري پېړۍ کې له شپږو ښکلو شوو منارونو ((څلو)) سره د (خواجه عبدالله انصاري زیارت، د هرات ګذرګاه او نور زیارتونه او همدارنګه په بلخ کې د حضرت علي کرم الله وجهه په نوم زیارت چې د سخي په روضه مشهور دی. دا ټولې ځانګړتیاوې د تیموریانو د معمارۍ د هنر ښکارندوی دي. د دې دورې نور آثار، لکه: د کندهار د سر پوزې په غره کې (چهل زینه) چې د تاریخ د لیکنې په اساس د بابر پاچا په امر له تراشل شوو تیږو څخه جوړه شوې ده چې اتیاوو تېږو توږونکو کسانو د نهو کالو په موده کې جوړه کړې ده. همدارنګه، د بابر په وخت کې په کندهار،



(٥ انځور په نهمه هجري پېړۍ کې د خواجه ابونصر پارسا قبر



( ٦ انځور په پنځمه او شپږ مه هجري پېړۍ کې د بابا حاتم مقبره

کابل، استالف او په شمالي او ختیځو برخو کې ډېر لوی لوی باغونه جوړ شوي دي چې ډېر مشهور یې دا دي: علم گنج، شهرارا، دلکشا، چار باغ، د بابر باغ، د بگرامیو باغ، د صفا باغ، د کوکب باغ او داسې نور.



( ۷ انځور ) د هرات د جامع جومات منار



( ۸ انځور) د حضرت علي (کرم الله وجهه) روضه

**تمرین**

۱-ستاسې په چاپېریال کې د اسلامي دورې کومې ودانۍ تراوسه پاتې دي؟

۲-په اسلامي ودانیو کې له کومو موادو څخه کار اخیستل کیده؟

۳- په افغانستان کې د اسلامي دورې د ودانیو ډېرې مهمې ځانگړنې کومې دي؟

# ۳ لوست



## په طبیعي موادو ټاپه کاري

### تر اوسـه مو فکر کړی دی چې له کومو شـیانو څخه د ټاپه کولو لپاره کار اخلئ؟

له رنګینو مهرونو څخه په کار اخیستنه ټاپه کول سرته رسیږي. دا په دوه ډوله دي: تیار او جوړ شـوي مهرونه : طبیعي مواد چې ډېر ښـکلي جوړښـتونه لري. کولی شـو چـې د ټاپه کولو لپاره له تیارو یـا طبیعي مهرونو څخه کار واخلـو. د الوتونکو بڼکې، ډبرې، صدفونه، دونو لښـتې او پاڼې او ... چې ډېر عجیبه او حیرانوونکي جوړښـتونه لري. د هغوی په مرسـته کولی شو. بېل بېل رنګه نقشـونه لاس ته راوړو. همدارنګه کولی شـو چې د میوو او سـبو د عمودي او افقي نیمولو او پریکولو څخه ګټه واخلو او له نیمې شوې برخې څخه چې په رنګ ککړه وي، د ټاپې لپاره کار واخلو.
د طبیعي موادو په ټاپه کولو کې د پدیدې بېلې سـطحې باید په پام کې ونیول شـي او د هغـې له هر لوري څخـه ټاپه جوړه کړئ. پـه دې ډول له بېلابېلو طبیعي جوړښتونو سره آشنا کېږئ او نوي انځورونه پیدا کوئ.



په طبيعي موادو د ټاپې تر ســرته رســولو وروســته، کله چې رنګونه وچ شول، په جوړوشوو انځورونــو ، نوي او تازه رســمونه وکاږئ. بيا انځورونو ته په ځيــر وګورئ او د خطونو په ور زياتولو هغه په نوي شکل بدل کړئ.





(۲ انځور) په طبيعي موادو ټاپه کاري.



(٤ انځور) په طبيعي موادو ټاپې بشپړول.



(۳ انځور ) په طبيعي موادو د ټاپې بشپړول او په هغې د نوو شکلونو جوړول.



**تمرين**

ستاسې په چاپيريال کې چې کوم طبيعي مواد شته، هغو ته په ځير سره وګورئ، څه ډول يوه ښکلي ټاپه جوړولی شئ.

# ۴ لوست

## د مبارکۍ کارت او دپا کټ جوړول

### تراوسه مو څو ډوله د مبارکۍ کارتونه لیدلي دي؟



خلك په بېلو، بېلو ورځو او مناسبتونو د مبارکۍ کارتونه یو بل ته ورکوي، لکه: د میلمستیا کارت، د قرآنکریم د ختم کارت، د کوچني اخترد مبارکۍ کارت، د لوی اختر د مبارکۍ کارت، د نوي کال د مبارکۍ کارت، د زېږېدنې د ورځې کارت، د ښوونکې د ورځې کارت ... او نور. د مبارکۍ کارتونه په بېلابېلو کچو او اندازو او بېلا بېلو طرحو جوړېږي. په هغو کارتونو سربېره چې په بازار کې پلورل کېږي، کولی شو لاسي کارتونه په ښکلې بڼه جوړ کړو. د کارت د جوړېدو لپاره باید موضوع وټاکل شي. وروسته یې اندازه طرح او د جوړولو لاره چاره وټاکل شي. لومړی یو سپین او یا رنګه مقوا کاغذ د هغه کارت په شکل او اندازه چې تاسې په پام کې نیولی دی، پرې کړئ. د کاغذ منځ په پنسل او یا کوم شي باندې چې تېزه څوکه ولري، یو خط کش کړئ چې له سم نیمايي څخه قات شي. لومړی د کارت په مخ خپله طرحه انځور کړئ.





د هغې د ښکلا لپاره له بېلا بېلو لارو څخه، لکه: انځور گرۍ ، ټاپه کارۍ، د بېلا بېلو موادو نښلول يا رنگه کاغذونه (کولاژ) د طرحې بشپړول او يا په هغې باندې د نورو موادو نښلول او يا له ځنگ په ځنگ ايښودلو څخه کار واخلئ.

ځينې کولاژونه پنډه وي، پام کوئ چې ستاسې کارت زيات پنډ نه شي او په پاکت کې په ښه شان ځای شي. پام مو وي د کومې ورځې په مناسبت او يا هغه چاته چې تاسې کارت ورکوئ له روشونو او لارو چارو څخه يوه لاره د هغو د بشپړيدو لپاره وټاکئ. لومړی خپله طرحه د کارت په مخ انځور کړئ. د کارت مخ او د هغې د ننه برخه په ښکليوانځورونو ښکلې کړئ. وروسته په ښکلي خط د کارت د ليکلو برخه وليکئ. د کارت تر چمتو کولو وروسته کولی شئ هغه ته يو ښکلی پاکټ جوړ کړئ. د پاکټ اندازه د کارت له اندازې سره په پام کې ونيسئ. د يوه پاکټ د جوړولو لپاره بيلا بيلې لارې شته. تاسې کولی شئ يو جوړ پاکټ خلاص کړئ او د پاکټ د جوړيدو طريقه ترې زده کړئ او هم کولی شئ چې د پاکټ د جوړولو لپاره يوه نوې طرحه جوړه کړئ. د پاکټ د جوړولو ډېره اسانه لار داده چې خپل کارت د يوه سپين کاغذ په منځ کې کيږدئ او بيا په پنسل باندې د هغې څلور خواوو ته تت او کمزوري خطونه وباسئ، په څلورو خواوو يې مثلثونه رسم کړئ، بيا اضافي ځايونه بياتي کړئ، د تتو خطونوځايونه قات کړئ او درې مثلثونه سره ونښلوئ، نو ستاسې پاکټ به تيار شي. پام مو وي چې د پاکټ د ننه برخه په څنډو پورې ونه نښلي. وروسته بيا خپل کارت د پاکټ په د ننه کې کيږدئ او څلورم مثلث پرې قات کړئ او خپلو خپلوانو ته يې ورکړئ.



## تمرين

۱- د يوې ځانگړې ورځې په مناسبت يو کارت جوړکړئ، طرحه، اندازه او د ښکلاطريقه يې په خپله خوښه وټاکئ.

۲- د کارت په اندازه يو ښکلی پاکټ جوړ کړئ او خپل کارت په کې واچوئ.

# ۵ لوست



**له تناسباتو، لیرې، نږدې او ریتم سره آشنایي.**

**په طبیعت کې د پدیدو ترمنځ کومې اړیکې وینئ؟**

تناسب: د فیل او زرافې د بدن اندازې، د سرېو د سترګو او د پوستکي رنګ، دیوه ماشوم د لاس پوستکي او د یوه زاړه سړي د لاس پوستکي ته مو پام کړی دی؟

د برخو او اجزاوو تر منځ نسبت او په هره پدیده کې د هر یو جز نسبت ته



(۱ انځور) د هر یوه حیوان په بدن کې ځانګړې تناسبات پیدا کېږي د زرافې د بدن بیلابېلو برخو اجزاوو ته پاملرنه وکړئ.

تناسب وايي. په طبيعت کې زيات شمېر تناسبونه ليدل کېږي. په طبيعت کې هره پديده ځانګړي تناسبونه لري. له همدې امله، په طبيعت کې د خدای تعالیﷻ مخلوقات په هنري او د بشر په لاس جوړښتونو کې د تناسب او ايجاد معيار ګرځيدلی دی.

انسان د غرونو، تيږو، ونو، ګلانو، حيواناتو، الوتونکو، کبانو او ......په دقيقه ليدنه خبرېږي، د توتي د ښکو د رنګونو تر منځ تناسب، د فيل په بدن کې د اجزاوو ترمنځ تناسب د فيل (هاتي) خرټوم اوږد شکل، پلن غوږونه، سر، بدن او د فيل لويې پښې او د ونو د اوږدوالي او پلنوالي تناسب په همدې ترتيب د انځورګرۍ لاسي کار، په خټه کار، د حجمونو جوړولو او ..... د اندازو تر منځ تناسب، شکلونو او جوړښتونو ته اړتيا لري.

پرسپکتيو: ( لريوالی او نږد يوالی ) هغه شيان چې لرې دي او هغه شيان چې نږدې دي څه توپيرونه سره لري؟ انسان د لرېوالي او نږد يوالي په سبب شيان او طبيعي پديدې، په بېلا بېلو بڼو ويني. د مثال په توګه که يو ځنګله ته له لرې وکتل شي هغه ونې چې نږدې دي له رنګه ډکې اوله ډېرو جزيياتو سره ليدل کېږي او هغه ونې چې لرې وي کم رنګه، لنډې او جزئيات يې نه تر سترګو کېږي، نو له دې امله اندازه او د اشياوو ليدنه له نږدې او لرې څخه توپير کوي.



(۲ انځور) د بېلو بېلو ګلانو په رنګونو کې تناسب، د نباتاتو حيوانانو، کبانو، الوتونکو او حشراتو تناسب ته په غور وګورئ.



(۳ انځور) د حيواناتو په تن کې د بېلا بېلو سيمو د ونو شکل ، وريځو او غرونو ته پام وکړئ.

د اشیاوو او طبیعي پدیدو په کوچنیو او لویو انځورولو کولی شو لیرې او نږدې وښیو. همدارنګه په متضادو رنګونو هم کولی شو لرې او نږدې وښیو، لکه: ( تیاره رنګونه د روښانه رنګونو ترڅنګ) هنرمندان د لرېوالي او نږدېوالي لپاره له بېلا بېلو لارو چارو څخه کار اخلي.

تصویرونه وګورئ او د لریوالي او نږدیوالي د بېلابېلو لارو چارو په هکله سره وغږېږئ.

ریتم: تر اوسه مو د شپو او ورځو او د کال د فصلونو تکرار ته پاملرنه کړې ده؟ په طبیعت کې د پدیدو تکرار او بدلون یو ځانګړی نظم لري.

هنرمندان د هنر په بېلابېلو څانګو کې د کلمو، غږونو، شکلونو، رنګونو او خطونو تر منځ تکرار او بدلون رامنځته کوي. ریتم کله منظم او کله نا منظم وي. منظم ریتم په طبیعت کې، لکه: د زړه د حرکتونو او په هنري آثارو کې، لکه: د کاشي کارۍ په انځور کې یا د قالینو اوبدل منظم تکرار دی. د غیر منظم ریتم نمونې په طبیعت کې، لکه: د بحر د اوبو څپې چې په بېلابېلو فصلونو کې ډول ډول بدلونونه پکې رامنځته



( ٤ انځور ) د جوارو د دانو د تکرار منظم ریتم ته پام وکړئ.



( ٥ انځور) د غڼي په تارونو د ریتم تکرار ته پام وکړئ.



(٦ انځور ) د وریځو تکرار په آسمان کې یو ځانګړی ریتم رامنځ ته کوي.



(٧ انځور) دګوره خر د خطونو ریتم ته وګورئ.

کېږي. نا منظم ریتم په هنري آثارو کې د خطاطی د الفبا په تورو کې لیدل کېږي چې د عمودي او افقي خطونو په یو ځای کیدو یې ځینې برخې زیاتې اوځینې نورې یې کمې وي او بېل بېل بدلونونه لري. نا منظم ریتم د سترې کوونکي تکرار مخه نیسي.

له بېلو بېلو رنګونو، جوړښتونو، خطونو، شکلونو څخه په کار اخیستنه کولی شو چې په هنري تجسمي آثارو کې تناسب، ریتم او ښکلا منځ ته راوړو هنرمندان د بېلا بېلو ریتمونو الهام له طبیعت څخه اخلي.



## تمرین

١- د تناسب نمونې په شکلونو، رنګونو او اندازه په طبیعت کې پیدا کړئ او د هغو په هکله سره وغږیږئ.

٢- د خپلې خوښې له رنګونو څخه په یوه پاڼه کې یو ښکلی ریتم جوړ کړئ.

# ۶ لوست



## د طبيعي منظرې انځورګري

### ستاسي پر شاوخوا او طبيعت کې د ليدنې ښکلې ځايونه شته؟ له هغو کوم يو د انځورګرۍ لپاره ټاکئ؟

ګلان، د ښتې، باغونه، ځنګل، د ګودر غاړه، د طبيعت ډېرې ښکلې منظرې دا ټول د نقاشۍ لپاره مناسبې موضوع ګانې دي. د طبيعت فضا د انځورګرۍ له صفحې شخه ډېره لويه ده، خوکولی شو چې هغه په مناسبه اندازه وړه کړو او د انځورګرۍ په پاڼه کې يې ځای کړو.

لومړی په خپل شــاوخواکې يوه ښکلې منظره انتخاب کړئ، وروسته تصميم ونيسئ چې کومه برخه انځور کړئ.

(۱ انځور) د دې منظرې د انځورولو لپاره لومړی اوبه رسم کړی او بيا افق او بيا غرونه انځور کړئ.



(۲ تصوير) د دې منظرې په انځور ولوکې لومړی د لارې خطونه او ونې انځور کړئ.



په غور او دقت هغې ته وګورئ او بیا هر هغه شــی چې ډېر لوی وي هغه انځور کړئ او وروســته د هغه په شاوخوا کې نور شیان ورزیات کړئ. ښه داده چې لومړی منظره په رنګه پنسل چې کم رنګه وي وباســئ، ځکــه چې که کــوم ځای د اصلاح وړ و، هغه ته بدلون ورکــړئ. د انځورولو په وخت کې په طبیعت کې تناسبات، لرېوالی، نږدېوالي او ریتم ته په کلکه پام وکړئ او هغه په انځور ګرۍ کې وښایاست.

کله مو چې طرحه بشــپړه شــوه، نو بیا د طبیعت رنګونه په ډېر دقت وګورئ. تاســې کولی شئ په خپل انځــور کــې لــه طبیعي رنګونــو څخه کارواخلــئ او یــا د خپــل احســاس د بیانولــو لپاره ذهني رنګونه د طبیعت په فضا کې وکاروئ او کوښښ وکړئ چې په خپله نقاشۍ کې د رنګونو ورته والی او همغږي وښیئ.





(٤ انځور) په دې منظره کې لومړی ونه انځور کړئ.



(٥ انځور) لومړی غرونه او بیا ونې انځور کړئ.



## تمرین

له ټولګي څخه د باندې په خپله خوښه د منظرې په انځورولو پیل وکړئ.

# ۷ لوست

## د جشنونو او ملي لوبو انځورګري

### د ریښتیني ژوندانه کومې موضوع ګانې د انځورګرۍ لپاره ټاکئ؟
### جشنونه او لوبې د انځورګرۍ لپاره کومې په زړه پورې صحنې لري؟

هر هېواد ځانګړي دودونه او رواجونه لري چې خلک یې په بېلا بېلو وختونو کې لمانځي. دا لمانځنې د موضوع د ارزښت ښکارندوی دي. ځینې رسمونه او رواجونه خصوصي وي چې په یوې یا څو کورنیو پورې تړاو ولري، لکه: د واده مراسم او ځینې مراسم عمومي وي چې د هېواد هر وګړي ته د ارزښت وړ وي او ټول خلک په کې خوښي ښکاره کوي، لکه: د افغانستان د خپلواکۍ جشن چې هر کال د زمري په ۲۸ نېټه لمانځل کېږي.



دا پــه افغانســتان کې ملي جشــن دی. په ۱۲۹۸ هـ ش کال کــې د اعلیحضرت امان الله خان په مشرۍ او د افغان میړني ولس په سرښندنو افغانستان د هغه وخت له انګلیسي یرغلګرو څخه آزاد شــو. په دې ورځ ولس مشــر او ولســي لوړ پوړي چارواکي د خلکو ترڅنګ د جشن په مراسمو کې برخه اخلي.

په ملي جشــنونو کې داســې لوبې سرته رســیږي چې د ټولو لپاره په زړه پورې وي. له همدې امله، دا ورځــې د خلکــو په زړونو کې د ډېر وخت لپاره پاتې کېږي چې ځینې برخې یې نه هیریدونکې دي. موسیقي غږول کیږي او هنرمندان د ازادۍ ځانګړې سندرې وایي.

د خپلواکۍ په جشــن کې بېلا بېلې ســپورټي لوبې کیږي چې یوه یې هم (نیزه بازي) ده. نیزه بازي په آس، نیزه او د لرګي په موګي باندې چې تقریباً پنځلس ســانتي متره وي او په ځمکه کې ټک وهل کېږي. داسې ترسره کېږي چې ډول وهونکی ورته ډول وهي او نیزه باز پر آس سپور د موګي پــه لوري حرکت کوي. څومره چې موګي ته نږدې کېږي په همغه اندازه ډول وهونکی هم ډول تېز وهي ترڅو نیزه باز موګي ته ورســیږي او دنیزې په ســر د لرګي موګی پورته کړي، هغه نیزه باز چې په دوو وارو کې موګی پورته نه کړي، د لوبې بایلونکی شمېرل کېږي. دا لوبه په خلکو کې ډېر شور او زوږ رامنځ ته کوي.

**تمرین**

۱- پوهېږئ چې په افغانستان کې ملي جشنونه کوم دي؟
۲- هغه جشــن او میله چې ډېر مو خوښــیږي په هکله یې ســره خبرې وکړئ او د جشن هغه صحنه چې ستاســې خوښــه شــوې وي، انځور کړئ او ننداري ته یې وړاندې کړئ او په هکله یې سره وغږیږئ.
۳- ستاســې په ښــار کې په جشن کې کوم رسم او دود تر سره کېږي؟ په دې ورځ کومې لوبې سرته رسوئ؟ په هکله یې سره وغږیږئ.
٤- په هغه ځای کې چې ژوند کوئ د لوبو په اړه یې په خپلو کې سره خبرې وکړئ.

# ۸ لوست



## له غونج شوو کاغذونو څخه د حجمونو جوړول

### کوم باطل مواد د حجمونو د جوړولو لپاره مناسب دي؟

ډېر باطل مواد زموږ په شاوخوا کې شته چې د حجمونو د جوړولو لپاره مناسب دي. د دې موادو له ډلې څخه یو هم باطل کاغذ دی. له باطله کاغذ څخه په بېلا بېلو لارو او روښونو حجمونه جوړوي چې یو هم له غونج شوي کاغذ څخه ګټه



اخیستنه ده. د دې کار لپاره تاسې هم کولی شئ چې د خپلې خوښې موضوع وټاکئ او د هغې د شکل او اندازې په هکله تصمیم ونیسئ. په بېلابېلو رنګو د باطلو کاغذونو ټوټې را ټولې کړئ.

خپل لاسونه لږ څه لانده کړئ او باطل کاغذونه په دواړولاسونو ښه کلك کړئ چې ښه غونج شي او وروسته هغه شکل چې ستاسې په ذهن کې وو په همغه ډول خپل غونج شوي کاغذونه تنظیم او د خپلې خوښې شکل جوړکړئ. کولی شئ حجم یو او یا څو ټوټې جوړ کړئ او د سکاشتیب په وسیله یې سره ونښلوئ.



(۲ تصویر ) له غونج شویو کاغذونو څخه یوه جوړه شوې مڼه





(۳ انځور) دغونجوشویو کاغذونو برخې سره ونښلوئ او په لرګیو پورې چې د الوتونکي پښې دي، وصل کړئ.



(٤ انځور) وزرونه، لکۍ، مښوکه او سترګې یې په حجم پورې ونښلوئ.

## تمرین



یو مقوا ډبل کاغذ د دایرې په شکل جوړ کړئ. ترڅو کاغذي واړه شکلونه، لکه: (مرغی) له غونج شویو کاغذوڅخه جوړه او رنګه کړئ. دنخ د تار په واسطه هغه د دایرې په مرکز پورې څوړند کړئ بیا یې د کوټې په چت را وځړوئ او که دا شکلونه کړکۍ ته نږدې وو، نو باد هغه ښوروي، حجمونه په حرکت راولي او ښکلا یې زیاتېږي.

## ۹ لوست



# له اسلامي هنرونو سره آشنايي

## آیا پوهیږئ چې اسلامي هنر له مسیحي هنر سره څه توپیر لري؟

د اسـلام مقدس دین په عربسـتان کې چې د وحي د نازلېدو ځای دی، را څرګند شو. وروسته په ډېره بیړه د ختیځ له خوا نه تر منځني ختیځ، چین او هند پورې او د لویدیځ له خوا تر افریقا او هسپانیې پورې خپور شو. په دې پراخو سیموکې یې د ډېرو ژبنیو، قومي، جغرافیایي، تاریخي او نورو توپیرونو سـره سره یو شریک دین، تمدن او فرهنګ او اسلامي هنر یې منځ ته راوړل.

مسـلمانانو لومړی د دوو معاصرو او لویو تمدنونو د هنرمندانو د(بیزانس او اسلامي نـړی) لـه هنرونوڅخه د اسـلام د سـپیڅلي دیـن د راڅرګندیدو پـه وخت کې د جوماتونـو د جوړولـو لپـاره ګټه او چته کړه. په نوو مسـلمان شـوو هېوادونوکې د وخت په تیریدو سـره هنرمندانو هلې ځلې وکړې چې د اسـلامي عقیدو د بیانولو مناسـب کالبونه په خپلو هنري آثاروکې پیدا کړي. اسـلامي اعتقـادات، لکه: د لوی خـدای ﷻ یووالـی، د مخلوق یووالی (هم غـږي) چې په قرآن عظیم الشان کې یې بیان راغلی



(۱ تصویر) د هرات په (ګذرګاه) کې د (خواجه عبـدالله انصاري) په قبر د بسـم الله الرحمن الرحیم لیکنه چې کاشي شوي ده.



(۲ تصویر) لوی قاب د کوفي لیک له کتیبې سره، څلورمه هجري پېړۍ کې.

دی، په آسانۍ سره نه شوکولی چې په هنري آثارو کې یې وښيي. له همدې امله، هنرمندانو د دایرې په څیر له هندسي سمبولیکو شکلونو څخه چې د یوالي څرګندوی دي په بېلا بېلو دیزاینونو په مرکزي نقطه باندې ټینګار وکړ چې د عالم د بېلا بېلو پدیدو یوالی او هغه حقیقت چې له شکلونو او ظاهري موجوداتو څخه ډېر لوړ دی، څرګند کړي. د دې نظر له مخې اسلامي هنر له مسیحي هنر سره چې اصلي موضوع یې د مسیح عليه‌السلام او حضرت بي بي مریمې د ژوندانه د بېلا بېلو صحنو څرګندونه کوي، ډېر توپیر لري. مسلمانو هنرمندانو د قرآنکریم لیکنه په ښکلي خط او د لویو ښکلو جوماتونو په جوړولو سره یې په خپلو آثاروکې نظم ، تناسب، تعادل، هم غږي او ښکلا منځته راوړه چې روحاني ښکلې خطي اثار، اسلامي معماري او د طراحی نمونې، د سفالي لوښوجوړول، فلزکاري د لرګیو لوښې، د ټوکر ټوټې ، قالینې اوکتاب جوړول یې نورې لاس ته راوړنې دي.

(۳ تصویر) د غور ولایت منار جام چې د (۱۲۰۳) او (۱۱۵۳) میلادي کلونو ترمنځ د اسلامي تزئیناتو اړوند.





(٤ انځور) په اوومه پیړۍ کې د (لاکارتای) د مدرسې د چت کاشي کاري.



(٥ انځور) په اوومه هجري پیړۍ کې ډهلي ته نږدې د (قطب جومات ) حجاري.

که څه هم په ننۍ نړۍ کې دا نمونې د اسلامي هنر په طراحیو کې غور، دقت او ظرافت ګڼل کېږي، خو په هغو زمانو کې د بېلا بېلو وګړو د استفادې لپاره جوړې شوې وې چې ځانګړي ډیزاینونه یې درلودل. په اسلامي هنر کې د ډیزاینونو برخه له هنر سره یو ځای شوه، ترڅو مسلمانان هره شیبه په نظم، بڼکلا، برابرۍ او همغږۍ کې ژوند وکړي. د اسلامي هنر په نمونو کې سطحې ډېرې ظریفې او دقیقې په ښکلا پوښل شوې دي. په اسلامي لومړنیو پیړیو کې هنري ښکلا وې په هندسي طرحواو نقشونو، لکه: د ونو او بوټو په شکلونو (اشکال ګیاهي) او اسلامي ډیزاینونو سره منځته راغلي دي. وروسته یې په کاشي کاریو، سفالي او فلزي لوښو، د ټوکر په ټوټو، قالینو، میناتوری د الوتونکو، حیواناتو او انسانانو په انځورونوکې رواج وموند.



(٦ انځور) په لسمه هجري پیړۍ کې په ایران کې ( سجاده ایي )قالینچه



(۷ انځور) پــه څلورمه هجري پېړۍ کې په هســپانيه کې د (قرطبه) جامع جومات.

مسلمانو هنرمندانو په دې نمونو کې له طبيعت څخه تقليد پيل کړ او د شــکلونو په ســاده کولو کې يې له ظاهري شکل څخه ډډه وکړه چې د ليدونکي ذهن لــه واقعي نړۍ څخــه بېل او معنوي نــړۍ ته يې را وبولي، نو ځکه په قرآنکريم او جای نمازونو باندې د انسان او حيوان تصويرونه نه انځوروي، په دې نمونو کــې هندســي پيچلي خطونه او رنګونه په اســلامي ډيزاينونو کې د سترګو د حرکت سبب کېږي چې د ليدونکي ذهن په يوه نقطه کې نه درېږي دا ريتميک حرکت د نقشــونو په طراحۍ کې د رياضي په شــان پــه نظم ليدل کېږي، تعــادل او همغږي چې په نيول شوې او خالي فضا کې منځ ته راغلي دي په اثاروکې ســربېره په ځانګړي شکل، حرکت، نظم، تعادل او همغــږي را منځته کــوي. د مســلمانو هنرمندانو له نظره دا همغږي، د نړۍ د يووالي څرګندونه کوي.



## تمرين

۱- د روښانې فضا او د ښکلا ورکولو په نقشونو سره وغږېږئ.

۲- د اسلامي هنر کومې نمونې موليدلي دي؟ د ډېروښکلونمونو په هکله يې څه وليکئ.

۳- کومې هنرې ځانګې پېژنئ چې د مسلمانانو تر منځ دوديزه بڼه لري؟

# ۱۰ لوست



## له اسلامي ډیزاینونو څخه کاپي کول

### د اسلامي ډیزاینونو د کاپي کولو په لاره چاره پوهیږئ؟



(۱ تصویر ) په راولپنډی کې د ( معي الدین ........ د مقبري کاشي کاري.



( ۲ تصویر) طرحه د کاغذ په مخ پلي شوي ده.

د قالیني او کاشي د ښکلو ډیزاینونو د کاپي کولو لپاره لومړی د خپلې خوښې ډیزاین پیدا کړئ، وروسته په ترس کاغذ ( شفاف کاغذ) کې یې کاپي واخلئ ترڅو وکولی شئ چې بل کاغذ ته یې ولیږدوئ او بیا یې رنګه کړئ.

د طرحې د انتقال لپاره ښه دا ده چې ډیزاین د میز پر سر انځور کړئ او په تخته یې کېږدئ او بیا د ترس کاغذ وربانديې سربېره داسې ټینګ کړئ چې د کار کولو په وخت کې ونه ښوري. وروسته د ډیزاین خطونه په ډېر غور سره وباسئ. ښه دا ده چې لومړی د ډیزاین اصلي خطونه وکاږئ او وروسته یې جزییات رسامي کړئ. کله موچې ډیزاین بشپړ کړ، هغه له اصلي ډیزاین څخه جلاکړئ. اصلي طراحي لرې کړئ او د ترس کاغذ په بل مخ واړوئ. ډیزاین د دویم ځل لپاره انځور کړئ چې د اصلي کاغذ د ټاپه کولو لپاره چمتو شي. لومړی لړ پنډ کاغذ یا مقوا چې د رنګه کولو لپاره مناسب وي، د نقاشي د میز پر تختې د سکاشتیپ په وسیله یې څلور واړه څنډې ونښلوئ.



( ۵انځور) یوه بله مرحله.

د ترس کاغذ په خپل اصلي مخ راواړوئ او په نښلول شوي ډبل کاغذ یې داسې ونښلوئ چې کونجونه یې سره برابر وي چې کلک شي. یو وار بیا هغه خطونه چې د ترس په کاغذ معلومېږي انځور کړئ چې ډیزاین له ترس کاغذ څخه ډبل کاغذ ته ور ولیږدوي.
ورو، ورو د ترس کاغذ له ډبل کاغذ څخه جلا کړئ او وګورئ چې ډیزاین په بشپړه توګه ډبل کاغذ ته انتقال شوی دی او کنه؟



( ٤ انځور) اخري مرحله.

که ستاسې ډیزاین بشپړ و، نو په هغه صورت کې د رنګه کولو لپاره چمتو دی.
لومړی له آبي رنګونو څخه یو ډېر تیاره رنګ جوړکړئ، هغه ځایونه چې تیاره معلومېږي، رنګه کړئ، بیا له روښانه رنګونو څخه رنګونه جوړ کړئ او په خپلو ځایونو کې یې وکاروئ چې رنګول بشپړ شي. وروسته کاغذ له مېز، یا د نقاشۍ له تختې څخه جلا کړئ او هغه په شیشه یې قاب کې کېږدئ.



**تمرین**

له یوه اسلامي ډیزاین څخه یوه ښکلې کاپي جوړه کړئ.

# ۱۱ لوست

## د لیک د ښکلا له هنر سره آشنايي

**«من کَتَبَ بِسْـمِ اللهِ الرّحْمنِ الرَّحِیْمِ مُجَـوَّدَةً تَعظِیماً لِلّٰهِ غَـفَرَاللهُ لَهُ.**
**څـوک چـې د الله د درناوي پـه خاطر بسـم الله الرحمن الرحيم په ښکلي خط وليکي، الله تعالی به هغه وبښي.**

د ښـکلي ليکل هنر د اسـلامي لومړيو پيړيو لومړنۍ پديده ده چې د اسلام د سـپيڅلي دين له خپريدو څخه وروسـته يې په مکه معظمه کې پراختيا او پر مختيا ومونده له. د سواد زده کړه پيل شوه او قرآن کريمونه د لومړي ځل لپاره




(۱ انځور) د ياقوت المستعصمی امضاء)

په ((کوفي خط)) وليکل شـول. اسـلامي حسـن خط د قرآنکريم او نبوي احاديثو د ليکلو په خدمت کې و چې مسلمانانو ته يې ډېر ارزښت درلود.

د هغو ی د هڅو په نتيجه کې يې د الهي کلام لپاره يو په زړه پورې هنر چې د ښـکلا ارزښت يې درلود، مينځ ته راوړ. د حضرت محمد ﷺ له وفات څخه وروسته قرآنکريم د حضرت عمر رضي الله عنه په مشوره د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په وخت کې د زيد بن ثابت رضي الله عنه په واسـطه را ټول شـو او د حضرت عثمان رضي الله عنه په وخت کې په واحد مصحف کې تکثير شو.

د قرآنکريم په ليکلو سـربېره د قرآني آياتونو، حديثونو، دوعاګانو او مبارکو نومونـو بېلا بېلې ليکنې پـه ودانيو، په ځانګړي ډول په جوماتونو، منبرونو، دروازو، سـفالي لوښـو، فلزاتو او د ټوکر په ټوټو رواج وموند دا خطونه يا ليکنې په اسـلامي هنر کې له هندسـي ډيزاينونو سـره د ښکلا لپاره کارول کيدل.



(۲ انځور) د نهمې هجرى پېړۍ په دويمه نيمايي کې د قرآنکريم د دوو لومړنيو صفحو په نازک نخودي کاغذ په نسخ خط ليکل شوی دی.

په درېيمه هجري پېړۍ کې ( ابن مقله بیضاوي) د لیکونو د اسـانه کولو لپاره له کوفي خط څخه نوي لیکونه راویسـتل، لکه: د (نسخ) لیک د وخت په تیریدو سره بشپړ او ښکلا یې هم زیاته شوه او له هغه وروسته تر اوسه پورې ټول قر آن شریفونه په نسخ خط لیکل کېږي.

(۲ انځور) د فاتحه سورت د میر عماد حسینی هراتي لیکنه.)



ابـن مقله د نسـخ په لیک کې نور بدلونونه هم راوسـتل چـې په پایله کې یـې د ثلث خط منـځ ته راووړ. وروسـته نـور نـوي لیکونه، لکـه: ریحـان او محقق د قرآنکریم د سورتونو د عنوانونو لپاره او د توقیع خـط چې قاضیانو به د اسـنادو پـه لیکلو کې ترې کار اخیسـت د ( رقاع) خـط د فرمانونو، رقعـو او د کتابونو د عنوانونو د لیکلو لپاره چې د ولایتونـو حاکمانو پـه دې خط لیکنې کولې رامنځته شول. د نسـخ او ثلث خطونو په منځ ته را تگ سره په اسلامي هېوادونو کې د الهي کلام لیکنې په ډېرې ښکلې بڼه سرته رسیدې. هنرمندانو د پاڼو، لیکنو ، ښـکلا، د قرآنکریم د لومړیو پاڼو، د سـورتونو د پای د علامې او د کتابونـود ټوکونو په جوړیدنه کې مرسـته کوله. تر ابن مقله وروسـته د خط هنرمندانو اسلامي لیکونه لوړو پوړیو ته ورسول، لکه: د ابن بواب چې د نسخ خط قانونمندي یې مشخصه کړه، یاقوت مستعصمي چې بېل بېل خطونه یې ډېر ښـکلي لیکل او احمد نیریزي چې دخط په ښـکلا او پیاوړتیا کې یې سـاری نه درلود. اتمه هجري پېړۍ د خط د ښـکلا یوه ډېره ښـه دوره وه. د خط پر ښکلا سربېره د دې پېړۍ هنرمندانو نوي لیکونه، لکه: د

(تعلیــق) (خط چې  د توقیــع او رقاع خطونو له ترکیب څخه منځ ته راغلی دی د (نســتعلیق) خط چې د (نســخ او د تعلیق له خطونو څخه جوړ شــوی دی). او د شکست خط یې وکاراوه . د نستعلیق لیک په اسلامي دوره کې وروستنی پړاو دی. په دې لیک ډېرو خطاطانو لیکنې کړې دي، لکه: (میر علي هروي) او (میرعماد (حســیني)



هــروي چــې لیــک یــې د کمــال لوړې درجې ته رســولی دی. هنرمندانو بېل بېل اسلامي خطونــه پــه دیوالونــو، ودانیــو، دروازو، د منبرونو پــه دیوالونو، د قرآنکریــم پــه رحلونو پــه ډول ډول لوښــو او ټوکرانــو بانــدې کارولي دي.

(٤ انځور)

**تمرین**



١- د ښکلي لیک نمونې مو په کومو ځایونو کې لیدلي دي؟

٢- د نامتو جوماتونو دروازې او د خلکو کورونو ته څیر شئ او ووایئ چې له کومو موادو څخه جوړشوي دي؟

٣- هغه وسیلې چې په خپلو شاوخواکې وینئ، کوم اسلامي ښکلی لیک په کې کارول شوی دی؟

٤- ستاسې په ښار او یا کلي کې نامتو خطاط شته؟ په هکله یې معلومات وړاندې کړئ.

# ۱۲ لوست

## د بسم الله الرحمن الرحیم کاپي کول

**غواړئ چې له (بسم الرحمن الرحيم) څخه کاپي جوړه کړئ او په خپل کورکې یې وځړوئ؟**

مسلمانو خطاطانو الهي آيتونه په ښکلي بڼه ليکلي دي. د بسم الرحمن الرحيم څو نمونې مو په کتابونو، د تلويزيون په صفحه او د جوماتونو پر دېوالونو ليدلي دي؟
د نيمې تختې کاغذ په اندازه د بسم الله يو ښکلى تصوير پيدا کړئ او د بسم الله د کاغذ په اندازه د ترس کاغذ (روښانه کاغذ) را واخلئ او د بسم الله په سر يې داسې ونښلوئ چې ونه ښوريږي. هېر مو نه شي چې د بسم الله د ليکلو په وخت کې بايد اودس وکړئ. د بسم الله ليکل د لسم درس په شان کاپي کړئ.
اصلي کاغذ د نقاشۍ د مېز پر تخته باندې په سکاشټيپ ونښلوئ. د دې لپاره چې د کار کولو په وخت کې ونه ښوريږي او بل دا چې کاغذ د آبي رنګونو د استعمالولو په وخت کې پړسيږي له وچيدو وروسته به رنګونه بيا خپل اصلي حالت ته راوګرځي. د رنګه کولو لپاره لومړى ډېره تياره سيايي انتخاب کړئ.



برس په اوبو لوند کړئ او د آبي رنګونو په رنګ يې ککړ کړئ، وروسته، مويک د رسامۍ په پليټ (مناسب پلاستيکي لوښي، لرګيو، فلزي شيشه يې لوښو او يا د آبي رنګونو د قوطۍ په سرپوښ ومښئ چې رنګ او اوبه ښه سره ګډ او ترکيب شي. که رنګ ټينګ (غليظ) وي او په برس پورې نښلي د دويم ځل لپاره يې په اوبو کې غوټه کړئ چې ټينګوالی يې د کارولو وړ شي.

ستاسې تيار شوی رنګ د برس قلم په واسطه د کاغذ پر مخ کېږدئ او په ډېر غور او دقت رنګونه د اصلي خطاطۍ په شان په خپلو ځايونو کې په کار يوسئ. کله مو چې د بسم الله سطحه له رنګ ډکه کړه، بل رنګ جوړ کړئ. کله چې پخوانی رنګ وچ شو، نوی رنګ پرې وکاروئ. د بل رنګ د کارولو په وخت کې خپل برس په اوبو کې ووهئ، چې پخوانی رنګ په بشپړه توګه پاک شي. رنګونه له تياره څخه د روښانه رنګ په لور په خپلو ځايونو کې وکاروئ، چې د کاغذ پر مخ مو ليک بشپړ شي.

د کار تر بشپړيدو او وچيدو وروسته يې د مېز او يا د رسامۍ له تختې څخه جلا کړئ او په شيشه يې چوکاټ کې يې په ښکلې کوټه کې وځړوئ.







**تمرين**

د بسم الله الرحمن الرحيم يوه ښکلې نمونه پيدا کړئ او د هغې يوه کاپي جوړه کړئ.

# ۱۳ لوست



## له اسلامي معمارۍ سره اشنايي.

## کومې اسلامي ودانۍ پېژنئ؟

حضرت محمد رسول الله ﷺ د معراج د شپې په هکله وايي: ((ثُمَّ أُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ فاِذا فِيْها جَنابِذُ اللُّؤْلُؤ...[1])) ژباړه: او بیا جنت ته ور داخل کړل شوم، چې هلته مې یوه ډېره لويه گنبده چې له سپينو مرواريدو څخه جوړه شوې وه، وليدله. دا روايت د هرې اسلامي ودانۍ روحاني نمونه ده.

د مغرب له مراکش څخه د ترکې تر اناضول، او د البرز له غرونو څخه د ايران تر مازندران، او د هندوکش، کوه بابا او سپين غر په لمنو، او همدارنگه په هرات، غور او بلخ کې داسې ښارونه او کلي شته. چې د معمارۍ له نظره سره ورته والی لري او د طبيعي چاپېريال له ښکلاوو سره په هره سيمه کې همغږي لري. د اسلامي معمارۍ هنري آثار د مسلمانانو ترمنځ د همغږۍ نمونه ده. د طبيعي چاپېريال د همغږۍ سربېره د ودانيو د بېلا بېلو برخو ښکلاوې هم سره ورته والی لري. تاريخي ابدات که څه هم د جومات په د ننه او يا باندنۍ برخه کې وي او يا په کوم شخصي کور کې وي، په هغوی کې د ارامتيا او همغږۍ قانون حاکم دی.

(۱ انځور) د صفويانو په دوره کې په اصفهان کې يو لوی اوښکلی جومات چې له لرې ليدل کېږي.

(۱ انځور)



---

۱– متفق عليه.



(۲ انځور)



(۳انځور) د ترکيې د استا نبول په جومات کې لويه مرکزي گنبده



(٤ انځـور) د دريمـې هجـري پېړۍ په سـر کې د اسـلامي نړۍ د عراق د سا مزا لوی جومات چې منارې يې پنځوس متره لوړوالی لري.

د ودانۍ ټينگښت او تعادل په متقارنو طرحو (له دواړو خواوو څخه يو شان نسبت هغه محور ته چې په منځنۍ برخه کې دی، لکه: د يو ې گنبدې ښي او چپ اړخونه چې سره يوشانته دي) جوړ شوي دي او د ودانۍ د فضا طراحي داسې شوې ده چې انسان ته ارامتيا او تعادل وربښي.

اسلامي ښار جوړونه، کورونه، جادې، بازارونه او دښاري ژوندانه نورې اجزاوې داسې طراحي کيدې چې له طبيعي عواملو څخه ډېر زيات کار واخيستل شي. د مثال په توگه، په ښاري اسلامي معمارۍ او ودانيو کې له نور او رڼا څخه گټه اخيستنه داسې وه چې له يوې خوايې انسان د پاک خدای په فکر کې اچاوه او له بلې خوا د طبيعي روښنايي وسيله او د ودانۍ د تودوخې منبع وه. د اسلامي معمارۍ هنري آثار په دوو ډلو وېشل کېږي:

۱- معماري، مذهبي ودانۍ، لکه: جومات، مدرسې قبرونه او ....

۲- د نورو ودانيو معماري، لکه: کور، مانۍ، باغونه، کاروان سرايونه، حمامونه، بازارونه، پلونه او ....

د اسلامي معمارۍ ډېرې مهمې نمونې جوماتونه دي.

مسلمانانو د جوماتونو د جوړولو د ښکلا لپاره چې لوی خدای ﷻ ته د سجدې او عبادت ځای دی د قرآنکريم له آيتونو څخه په ډېره ښکلې بڼه د ډېر دقيق هندسي

تناسب له لیکلوڅخه ګټه اخیستله. د جومات د ودانۍ نقشه په ټوله اسلامي نړۍ کې یو شان ده، سربېره پر هغې جزئیات او ښکلاوې یې هم یو شان دي.

د جومات د ودانۍ ټول بعدونه له دایرې څخه لاس ته راځي. کله چې د جومات چت جوړ شي، نو په هغې باندې ګنبده جوړېږي. ګنبده په بېلو بېلو شکلونو جوړېږي چې ډېرې مشهورې یې له منحني خطونو څخه چې نیمې کرې ته ورته والی لري، جوړې شوې دي.

پر جوماتونو سربېره په زیارتونو هم د ګنبدونو جوړولو رواج درلود. په زیارتونو او جوماتونو کې منارې جوړېدې چې د منارو منځ به مارپېچي و او اذان کوونکي به د منار پورتنۍ برخې ته پورته کېدل او اذان به یې کاوه چې ټولوخلکو به هغه اورېده.

په اسلامي نړۍ کې د منارو ښکلاوو ځانګړې بڼه درلوده. په لومړي سر کې منارې د مکعب په شکل جوړېدې، خو وروسته یې د استوانې شکل رواج وموند. د منارو د ښکلا لپاره په بېلا بېلو اسلامي هېوادونو کې له بېلو بېلو روشونو او طریقو څخه کار اخیستل شوی دی.

چې دا ښکلا وې د ګنبدې له ښکلاوو څخه رامنځته کېدې. د جومات په دننه کې فضا داسې طراحي کېدله چې د لوی خدای ﷻ عظمت په ټولو برخو او د انسان په احساس باندې اغېزه وکړي. د ګنبدې په داخلي برخه کې د قرآنکریم آیتونه، نقشونه او ښکلاوې د دېوالونو تر مرکزي نقطې پورې لیدل کېږي. په دې ټولو کې د محراب ښکلا ځانګړې ارزښت لري.



(٥ تصویر )په مراکش کې دکتوبیه دجومات مناره چې د (موحدون) په دوره کې پای ته ورسیده



(٦ انځور) د هند په آګرا کې د (اعتمادوله) د قبرمنارې چې په ١٥ هـ ش پېړۍ کې جوړې شوې دي.



(۷ انځـور ) د اصفهان د جامع جومات محراب په ۷۱۰ هـ ق کال کې.



(۸ انځور) په مراکش کې د ( بن لوسـف مدرسـی محراب په لسمه پیړی کې.



(۱۹ انځـور) د ترکیې په اسـتانبول کې د ( سـوکولو) جومات محراب او منبر په لسمه هجري پیړی کې.



(۱۰ انځـور )د مصر په قاهـره کې د ( مؤید) د جومات منبر.

محراب د قبلې لورى ښايي او ټول مسلمانان د لمانځه پر مهال محراب ته مخامخ دريږي. له دې امله، په هر جومات کې محراب ته ډېرې ښکلاوې ورکوي.

په ډېرو جوماتونو کې د محراب ترڅنګ منبرونه د جماعت د امام لپاره جوړ شوي دي چې د وعظ په وخت کې وليدل شي او غږ يې واوريدل شي. د وخت په تېريدو سره کله چې منبرونه له لرګي څخه جوړ شول په ټولو اسلامي هېوادونو کې يې رواج وموند.

د منبرونو په طراحى او ښکلا کې ډېر توپيرونه ليدل، کيدل خو په کلي ډول هر څومره چې د مسلمانانو هنري ذوق په بېلا بېلو اسلامي هېوادونو کې د معمارۍ بېل بېل سبکونه منځ ته راوړي وو، خو له روحاني فضا سره يې ډېر ژور اوګډ پيوند درلود. دا جوماتونه په هسپانيه کې د قرطبه جومات، په ايران کې د اصفهان جومات، د هرات جامع جومات، دهند جومات او په نورو اسلامي هېوادونو کې جامع جوماتونه له يو او بل سره په اړيکه کې جوړشوي دي.



**تمرين**

۱- زموږ په ګران هېواد کې کوم لوى جوماتونه شته؟

۲- د دې جوماتونو ښکلا وې څه ډول دي؟

# ۱۴ لوست



## له اسلامي سبک څخه په استفادې پل جوړول

### تر اوسه مو کوم لرغونی پل لیدلی دی ؟

پلونه له اوبو څخه د تېریدو لپاره جوړېږي. که یو اوږد او پنډ لرګی د اوبو په سر کېږدو، د پلونو له ډلې څخه شمېرل کېږي.

انسانانو تر اوسه ډېر زیات پلونه په بېلو بېلو شکلونو له اوبو څخه د تېریدو لپاره جوړ کړي دي. پلونه د اسلامي معمارۍ یوه په زړه پورې نمونه ده. د دې پلونو محکمتیا، ظرافت او ښکلا د دې سبب شوې ده چې له سلګونو کلونو وروسته هم جوړ پاتې شي.

ستاسې په چاپېریال کې لرغوني پلونه شته؟ هغه پلونه چې ستاسې په چاپیریال



(۱ انځور) د پُل بیاتي شوې برخې



(۲ انځور) د پُل مختلفې برخې سره نښلول.

کې موجود دي، هغې ته په ځیر او دقت سره وګورئ. تاسې هم کولی شئ چې یو پُل لومړی په یو پنډ یا مقوا کاغذ باندې انځور کړئ. وروسته د انځور اضافي برخې بیاتي کړئ چې د پُل یو دېوال جوړشي. جوړشوی دیوال په بل پنډ کاغذ کېږدئ او شاوخوا یې په پنسل خطونه وباسئ او خطونه په غور سره د بیاتي په واسطه بیاتي کړئ. ترڅو بله کاپي کټه مټه جوړه شي، نو په دې وجه د پل دوه اصلي دېوالونه جوړیږي. د سر پوښلو لپاره له یوه نازک کاغذ څخه کار واخلئ او اوږدوالی یې د پُل د دیوال په اندازه او پلنوالی یې د پُل د عرض په اندازه ونیسئ او کاغذ او اضافي برخې یې بیاتي کړئ. د پُل یو سر پوښ په دیوالونو باندې په سرېښو ونښلوئ، ترڅو ستاسې لاسي کار جوړشي او هم کولی شئ چې جوړ شوی پُل په ډبل مقوایي کاغذ ونښلوئ او د خپلې خوښې په رنګونو یې رنګ کړئ. که غواړئ پُل ته نوره ښکلا ورکړئ، نو وړې ډبرې، پاڼې او ښاخونه ورپورې ونښلوئ او د پُل لاندینۍ برخه د اوبو په رنګ رنګ کړئ.



(۳ انځور) د پله لاسي کار

**تمرین**

له ډبل او نازک کاغذ څخه په ګټه اخیستنه یو ښکلی پُل جوړ کړئ.

# ۱۵ لوست

## له اسلامي هنرونو سره آشنايي

(۱ انځور) د ښکلي بسم الله الرحمن الرحيم تذهيب



حضرت رسول الله ﷺ فرمايلي دي:
(( إِنَّ اللهَ كَتَبَ اُلِإِحْسَانَ عَلىَ كُلِّ شَيْءٍ)) بې له شکه الله ﷻ ښيګڼې او ښه والی ته لازمه پاملرنه کړې ده.

په اسلامي تفکر کې هنر د موادو او شيانو د ښکلاوو د رامنځته کولو يوه طريقه ده. هر شی هم څرګند او هم پټه ښه لري چې مسلمان هنرمند بايد د هغې په هکله دقيق فکر وکړي. له ډېرو ښو تناسبونو څخه په طراحی د ظرافت په جوړيدو کې ګټه واخلئ او د هر شي په جوړيدو کې مادي عالم له روحي عالم سره پيوند کړئ.

په اسلامي هنر کې دوه مهم صفتونه ښکلا او ګټه د وسیلو او ډول ډول هنري آثارو د شیانو د بیانولو لپاره دي. له دې امله د اسلامي هېوادونو په هنري آثارو کې یووالی څرګندیږي چې له جغرافیایي پولو څخه اوړي.
اسلامي هنر د بېلو بېلو ښکلو او ظریفو لوښو جوړیدنه منځ ته راوړه چې ډېر زر یې نړیوال شهرت وموند.
په دې آثارو کې ټولې سطحې په نقشونو او اسلامي خطونو باندې پوښل شوې دي چې په لومړیو وختو کې د قرآنکریم د آیتونو لپاره کاریدې او د وخت په تېریدو د تذهیب په نوم یاد شو چې په کاشي کاریو او قالین اوبدلو کې ترې ګټه واخیستل شوه او د شیانو د سطحو د ښکلا لپاره په بېلو بېلو هنرونو، لکه: فلزکاري، کلالي، لرګي کیندنه، شبکه کاري، د تیږو په تراشلو، په تیره خطاطي، او ګنډلو کې ترې ګټه اخیستل شوې ده.



(٤ انځور ) پـه دولسـمه هجـري پیـړۍ کـې پـه هندکـې د څرمنـې څلـور ټوټـې چـې پـه طلایـي نقشـونو ښـکلي کـړل شـوي دي (د جیوتانـا)

ټولې سطحې دوې برخې لري چې يو يې حاشيه او بله يې متن دی. هره يوه سطحه په بېلو بېلو ډيزاينونو، ليکنو، ښکلي ليک او يا د حسن خط او انځور گرۍ په ترکيبي بڼه جوړه شوې دي.

مرکزي ډيزاينونه د دايرې په شکل طراحي کېږي چې په ښکليو انځورونو جوړېږي، او د اصلي سطحې د هرو څلور برخو $\frac{1}{4}$ تکرارېږي چې دا مرکزي ډيزاين د ( شمشه) يا ( نارنج) په نوم او $\frac{1}{4}$ برخه يې څنډه يا ( گوشه) بولي. کله کله څنډه يا شمشه په نورو ښکليو ډيزاينونو ډکېږي او کله کله متن په يوه تکراري انځورباندې پوښل کېږي او حاشيې ته په بل ډيزاين ښکلا ورکوي.

د لوښو په طراحۍ کې د لوښو د بېلو بېلو برخو لپاره ځانگړي ډيزاينونه کارول کېږي.

ختين خاورين لوښي په بېلو بېلو ډولونو جوړېږي چې د هرې برخې د ښکلا لپاره يې بېل بېل ډيزاينونه طراحي کېږي. د لوښي د هرې برخې او د ټولو لوښو د ډيزاينونو او خطونو تر منځ يووالی او همغږي ډېر ارزښت لري.



(۳ انځور)شبکه کاري شوې کړکۍ په اصفهان کې



(٤ انځور) په مزار شريف کې د حضرت علي کرم الله وجهه دمقبرې دروازه



(۵ انځور ) د ايران په ارد بيل کې د ( شاه اسمعيل د قبر ليکنې)

په هغو آثارو کې چې ډيزاينونه د حجم په ديوالونو انځوريږي، د لوښــي دځتې، مخ او څنډو اړيکه زيات مهارت ته اړتيا لري.
پــه هغو آثارو کې چې رنــګ کارول کيږي، لکه: ټوکــر اوبدل، قالينې او بدل، کاشــي کاري او ....
هنرمند بايد د رنګ ترکيب، همغږي او ورته والی رامنځته کړي.



(٦ انځور لعابي پتنوس چې د اسکندر په انځور ښکلی شوی دی ق. م ځلورمه پيړۍ.



(٧ انځور) په لسمه پيړۍ کې د ترکيې په استانبول کې په يوه تبرليکنې.



(٨تصوير) په١٣٠٠ هجري کال کې د ايران په تبريز کې جوړه شوې قالينه.



## تمرين

١- داسلامي هنري آثارو مهمې ځانګړتياوې په ګوته کړئ؟
٢- په اسلامي هنرونو کې وحدت او يووالی څه دليل لري؟
٣- ستاسې په چاپېريال کې کوم اسلامي هنر وجود لري؟

# ۱۶ لوست



## له خټو څخه د قلمدانۍ جوړول

تراوسه مو د قلمدانۍ د جوړيدو تجربه کړې ده؟

له خټو څخه د قلمدانۍ د جوړيدو لپاره د خټو د لولو ( فتيلوي) له روش څخه بايد ګټه واخلو. په دې روش کې بايد خټه په لاسونو لوله شي.

(۱انځور) د لوښي لاندنۍ برخه اول لولی جوړ کړئ. )



دکار پیل: د لوښي د تلي په جوړولو پیل وکړئ: لومړی د لوښي یا قلمداني تل په هره اندازه چې ستاسې خوښېږي په دایروي بڼه جوړې کړئ. وروسته دختو لولې د یوه سانتي متر په قطر د قلمدانی د تلي په اندازه جوړې کړئ لومړنی لوله د قلمدانی له تلي سره ونښلوئ او بیا د هغې په سر نورې لولې په ډېر غور او دقت سره ونښلوئ چې د قلم د نیمایي په اندازه جوړ شي او بڼه یې بشپړه شي. د دې لپاره چې لولې له یو بل سره ونښلي لولې د لاندینی برخې په لورې وتراشئ او کولی شو چې خپلې ګوتې په اوبو لندې کړئ او وروسته لولو ته فشار ورکړئ، چې یو له بل سره کلکې ونښلي. دکار په وروستي پړاو کې هغه باید ښویې شي چې د لولو بڼه معلومه نه شي. د دې لپاره چې ستاسې کار ښکلا پیدا کړي، نو هغه په ښکلو ډیزاینونو رنګ کړئ.



(۱انځور) لمړنی بوړکي په سطح نښلول شوی دی.



(۲انځور نور بوړکي په سطحه ونښلوئ ترڅو قلمدانی جوړه شي.



(٤ تصویر) قلمداني په خپله خوښه رنګه کړئ او قلمونه په کې واچوئ.



(٥ انځور) لندې ختې ته په بېلا بېلو وسیلو فشار ورکړئ او بیل بېل ډیزاینونه په کې جوړ کړئ.



(٦ انځور)د قلمدانی باندنی برخه ښویه کړئ.

## تمرین



د لولو له طریقې څخه په کار اخیستنه یوه ښکلې قلمداني جوړه کړئ او بیا په ښکلیو ډیزاینونو او رنګونو ښکلا ورکړئ.

# ۱۷ لوست



## له میناتوری سره اشنایي

**ولې اسلامي میناتوري نړیوال نوم او شهرت لري؟**

د مسلمانانو لومړنۍ انځورګري د طبیعي علومو د کتابونو تصویري کول وو. له هغې وروسته، ورو ورو ادبي کتابونه، په ځانګړې ډول د سترو شاعرانو د شعرونو دیوانونه او د داستانونو ځینې صحنې انځوریزې شوې. غربي محققانو په دې دلیل چې په ډېره کوچنۍ اندازه او ډېر ظرافت یې دا تصویرونه د میناتور په نوم وبلل. مسلمانانو د کتابونو په انځورولو کې د خو پیړیو په اوږدوکې ډېر پرمختګ وکړ. دوی د بېلو بېلو رنګونو، تصویرونه، مارپیچي ترکیب بندي او د عقیدتي مفهومو د بیانولو له امله د ښکلا او هنري ارزښت لوړو پوړیوته ورسیدل او نړیوال شهرت یې پیدا کړ.





(۱ انځور) د منابع الحیوان ابن بختبیشوع د کتاب یوه پاڼه په اومه هجري قمري پېړۍ کې ( نرزمری او ښځه زمری)

(۲ انځور) دجواجوی کرمانی دیوان: د هما او همایون زرم، بغداد ۷۹۹ هـ ق کال.



(۳- انځور) (هارون الرشید) په حمام کې د خمسه نظامي له کتاب څخه د کمال الدین بهزاد اثر هرات، ۹۰۰ هـ .ق.

هغو انځورګرانو چې شعرونه يې انځورول، په شعرونو کې نغښتو عقيدتي مفهومونو ته يې ځانګړې پاملرنه درلوده. لويو شاعرانو، بېل بېل مضمونونه د شعر په ژبه بيانول، انځورګرانو هم له ښکلا او رنګونو څخه په ګټه اخيستنه دا شعرونه د تصوير په بڼه انځورول چې د بېلو بېلو مفهومونو او موضوع ګانو سره يې ډېره لګوله. له دې امله میناتوري يو ډول خيالي (ذهني) انځورګري ده.



( ٤ انځور)

په میناتورۍ کې د طبيعت پيروي نه کيږي، بلکې د شکلو په ساده کولو، د رنګونو په بدلون، د بېلو بېلو صحنو تمثيل او د ډول ډول موضوع ګانو تصويرونه کاږي. په دې آثارو کې هنرمندان هغه نرۍ تصويروي چې په هغې کې نقاشي ډېره روښانه ده. ډېر ځليدونکي رنګونه، بې له حجمه شکلونه، زيات ظرافت او ښکلا، ګلونه او بوټي په تازه ګۍ کې تصوير شوي دي. فضا يې ژوره ښودل شوې ده.په تصوير کې هېڅ سيورۍ نه ليدل کيږي.

ډېرو انځورګرانو د اسلامي میناتورۍ د شکل نيولو او وده ورکولو په هکله ستري ونډې سرته رسولي دي او ځينو نورو تر هغې هم ستري دندې تر سره کړي دي چې د دوی له میناتوريو څخه، نورو الهام اخيستنه، لکه:(جنيد السلطان) (کمال الدين بهزاد) او سلطان محمد چې د دوی د آثارو نمونې په دی درس کې وينئ.



(٥ انځور)

## تمرين

۱- کومې موضوع ګانې په دې انځور ګريو کې وينئ؟ د نقاشيو په هکله يې پخپلوکې سره وغږيږئ.

۲- په دې تصويرونو کې کوم شکلونه او رنګونه وينئ؟ د انځورګرۍ په هنر کې شکلونو او رنګونو ته پاملرنه وکړئ اوپه هکله يې په خپلو کې سره وغږيږئ.

۳- د ( جشن اوکوچني اختر) دکارتونو په میناتوريو کې ترکيب بند او مارپېچي حرکتونه پيدا کړئ.

# ۱۸ لوست



## د قرآنکریم د رحېل جوړول

### تراوسه مو د قرآنکریم د رحېل د جوړولو په هکله فکر کړی دی؟

مسلمانان د قرآن عظیم الشان لپاره چې د خدایﷻ کتاب دی، ښکلي رحیلونه جوړوي چې د تلاوت په وخت کې قرآنکریم له ځمکې څخه پورته پرې کیښودل شي. د قرآنکریم رحل له دوو لرګیو څخه جوړېږي چې یو په بل کې اوبدل کېږي چې په اسانۍ سره خلاص او تړل کېږي. د قرآنکریم د تلاوت په وخت کې رحل خلاصوي او له تلاوت څخه وروسته یې تړي او په داسې ځای کې یې ږدي چې کم ځای ونیسي.

تاسې هم کولی شئ چې هغه رحېل ته ورته چې هنرمندان یې له لرګي څخه جوړوي له ډبل مقوا کاغذ څخه جوړکړئ. لومړی مقوا کاغذ د مستطیل په بڼه بیاتي کړئ. وروسته، د مستطیل اندازه په دوو ورو برخو ووېشئ چې یوه



يې د ( قرآنکريم د کېښودلو) او بله يې د (پښو) برخه ده لکه: څنګه چې په شکل کې ښودل شوي دي، مقوا کاغذ د تيرې چړې او يا بياتۍ په واسطه پرې کړئ. پام مو وي چې د مستطيل عرض تر پايه پورې بياتي نه کړئ چې له کوچنۍ برخې څخه لويې برخې جلا نه شي. وروسته د پښو يا لاندينۍ برخه کې يې يو عمودي مثلث انځور کړئ او هغه هم بياتي کړئ چې د رحل پښې محکمې او ښکلې شي. د دې مرحلې له ترسرته رسولو وروسته دواړه برخې له بياتي شوي ځای څخه يو په بل کې ننباسئ.

د دې لپاره چې ستاسې رحل ښکلا پيدا کړي، نو د الله په مقدس نوم او يا په نورو دعاګانو او اسلامي ډيزاينونو ښکلا ورکړئ. دا ډيزاينونه د مقوا کاغذ او رحل په باندېنيو ديوالونو باندې په تور او سپين ډول او يا رنګه انځور کړئ. د دې کار لپاره د رحل د باندېنيو ديوالونو په لويو او کوچنيو برخو ښکلي ډيزاينونه انځور کړئ، ترڅو د رحل دواړو باندېنيو برخو ته ښکلا وروبښي وروسته بيا په خپل رحل کې قرآنکريم کېږدئ او تلاوت يې وکړئ.



**تمرين:**

۱- تراوسه مو د قرآنکريم څو ډوله رحلونه ليدلي دي؟ هغه له کومو موادو څخه جوړ شوي دي؟ آيا د رحل په ديوالونو ښکلاوې دي؟ دا ښکلاوې څه ډول دي؟

۲- د رحلو د ديوالونو ديو ځای کولو لپاره کومې لارې په کارورو؟

۳- له مقوا کاغذ څخه يو رحل جوړ کړئ او په خپله خوښه ښکلا يې ديوالونه ډيزاين کاري کړئ او د خپلې خوښې په طريقه يې ديوالونو سره ونښلوئ.

# ۱۹ لوست

## له افغاني هنرمندانو سره آشنا کېدل

**په افغاني هنرمندانو کې کوم کسان پېژنئ؟**
**هر يو د هنر په کومو څانګو کې فعاليت کوي؟**

### استاد محمد سعيد مشعل

حاجي محمد سعيد (مشعل) د محمود (غوري) زوی په ۱۲۹۵هـ .ش کال کې د غور ولايت د (تيوره) په کلي کې وزېږيد.

استاد مشعل په يوه هنر پالونکې کورنۍ کې لوی شوی و. د ځوانۍ په وختونو کې يې هنري کارونو ته پام ور واوښت. هڅه يې وکړه چې د استاد کمال‌الدين بهزاد مکتب را ژوندی کړي.



استاد پر ميناتورۍ پرته د حاشيو په ښکلا (تذهيب) کې د ډېرو تکړه هنرمندانو په ډله کې شمېرل شوی دی. استاد په ميناتورۍ کې نوښت رامنځ ته کړ ځکه چې ده ځانګړې لاره او روش درلود او د استاد کمال الدين بهزاد د مکتب په پيروانو کې حسابيږي. استاد ډېرو

شاگردانو ته هنري زده کړه ور په برخه کړي ده او ستر هنري خدمتونه يې سرته رسولي دي. استاد مشعل په ۱۳۷۶ هـ. ش کال کې د دلوې د مياشتې په لسمه نېټه له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د ابدي ژوندانه په لور روان شو. د ده ځينې آثار د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت په ملي ګالرۍ، دولتي تالارونو او د خلکو په کورونو کې ساتل کېږي.



## استاد عزيز الدين وکيلي پوپلزی

استاد په ۱۲۹۷ هـ .ش کال د سنبلې د مياشتې په ۱۶مه نېټه د کابل په چهاردهي کې وزيږيد. نوموړی له دې امله په ( اووه قلمي) خطاط باندې مشهور دی چې په خط کې د نوښتکاريو، نقاشۍ او انځور ګرۍ له امله د ګران افغانستان له نومياليو هنرمندانو څخه و. ده د کار په ښکلا او ظرافت کې ساری نه درلود. همدارنګه، د استاد وکيلي د تابلوګانو په حاشيو او متنونو کې ډېرې مهمې افغاني هنري پديدې ترسترګو کېږي. استاد وکيلي په هنري کارونو سربېره د خطاطۍ د هنر او تاريخي پيښو په هکله زيات کتابونه ليکلي دي. استاد د ۱۳۷۶ هـ.ش کال په لومړنيو مياشتو کې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې. روح دې ښاد وي.

### تمرين

تاسې په خپلو ولايتونو کې هنرمندان پېژنئ؟ د هغوی د مهمو آثارو نوم واخلئ.

# ۲۰ لوست

## له افغاني هنرونو سره آشنا کېدل



**د قالينې استر ته ځير شئ چې د هغې تار او پود د گنډې په وسيله څه ډول سره نښلول شوي دي؟**
**دقالينې پر مخ څه شی وينئ؟ د قالينې رنگين ډيزاينونه څه ډول په پر له پسې گنډو رامنځته شوي دي؟**

کله چې په قالينې کښينئ او يا پر هغې باندې لمونځ کوئ څه احساس درته پيدا کېږي؟ د هنر لومړۍ ځانگې په افغانستان کې زرگونه کلونه لرغونتيا لري.

که څه هم د هنري آثار و توليد د انسانانو د اړتيا وو دليرې کولو سر چينه ده، دقيقه طراحي، د بېلو بېلو ډيزاينونو کارول، د دې هېواد د هنرمندانو د بېلا









بېلو نســلونو ذوق د تاریخ پــه اوږدوکې څرګندوي د خلکو هنــري مینه تکو او پارچــو ته رنګ او ډیزاینونه وربښــي، ښکلي او نرم فرشونه اوبي، ودانیو ته د قرآنکریم په مبارکو آیاتونو ښــکلا ورکوي، ســفالي او فلزي لوښي په ظرافت سره ښــکلي کوي، دروازو، منبرونو او د لرګي رحېلونو ته ښکلا ورکوي، کاري لوښي ښکلي کوي، ترڅو انسان هره شــیبه د ظرافت او ښکلا سره اړیکې ولري، نو هغو ته یې ښکلا او ډیزاینونه ورکړي دي، نن هم د پوستینو جوړول، د سرامیکي (کلالي) لوښو جوړول، د غالیو او بدل او ... د هېواد په مختلفو سیمو کې دوام لري.

ډېــر وګــړي د دغه صنایعو پــه جوړولو لګیــا دي. څومره چې د تاریخــي هنــري آثارو ســاتنه ډېر ارزښــت لــري، همدارنګه د ډیزاینونــو، بېــلا بېلــو هنرونــو د رامنځته کولــو، کارولو او د ښکلاووطریقو او روښــونو انتقال وروستیو نسلونو ته ډېره زیاته اړتیا ده.

د لاســي صنایعــو تولید ســربېره پر هنــري او فرهنګي اړخونو داخلي او باندنیو بازارونو ته د هغو عرضه کول د اقتصاد له پلوه زیات ارزښــت لري. د افغانستان په نقشــه کې د لاسي صنایعو او بېلو بېلو هنرونو عمده مرکزونو ته پاملرنه وکړئ. د افغانستان پــه بېلو بېلو ښــارونو کې خلک په بېلابېلــو هنرونو بوخت دي او بېــل بېل لاســي صنایع تولیــدوي. د مثال په توګــه، په کابل ښــار کــې د معمارۍ، بخــارۍ جوړونه، پېښــګري. فلزکاري، مســګري، زرګري، کندنکاري، د مریو پییل، د ټوکرو او بدل، دتیږو تراشــل ، کلالي، نقاشــي، د غالیو اوبدل، خامک ګنډل



وجـود لري.په نورو ښـاروکې د ټوکـر او بدلو، وريښم او بدلو، شال او بدلو، دګلدوزۍ بېل بېل ډولونه شته ټوکريا رخت ته ښکلا ورکول، لکه: د مريوګنـدل، خامک ګنډنه، لـه ختې څخه د سـفالي لوښـو جوړول، کلالـي، د لاجوردو د غميـو تـوږل او ډبرينو لوښـو د جوړېدو هنرونه ادامـه لري چې يـو له هغو څخه پـه هرات کې ښيښـه جوړيدنـه ده چـې د ځانګـړې ظرافت درلودونکي ده. د ماتو او بېکاره ښيښـو له ويلي کولو څخه وروسـته رنګونه ور سـره ترکيب کوي چې ميرمنې او نارينه کله ګډ او کله هم بېل بېل په دې کارونو بوخت دي او په بېلو بېلو شـکلونو ګيلاسـونه او ښـکلي لوښي د لاس او اور په واسـطه توليدوي چې د امريکا او اروپا بازارونو ته يې لار پرانيسـتې ده که څه هم دا آثار د افغانسـتان په بېلا بېلو ښـارونو کې ليدل کېږي چې د ټولو سـيمو په آثاروکې ورته والى شته دى. د ډيزاينونو، رنګونو او جوړولو طريقې او روشونه يې بېل دي.د هرې سيمې د هنرمندانو ذوق او ابتـکار د دې سـبب کېږي چـې د ډيزاينونو او آثارو جوړول بېلـې ځانګړتياوې پيدا کـړي. هغـه بدلونونه چې هنرمندانـو د تاريخ په بېلو بېلو دوروکې په هنـري آثاروکې رامنځ ته کړي دي، د هنر د مختلفو څانګو د ودې او تحول سـبب شـوي دي. د همدې تحول له امله ده چې نن د لاسـي صنايعو څانګې لوړو پوړيو ته رسـيدلي دي چې ډېر ارزښتناک آثار توليديږي، لکه: د استالف کلالي( سراميک) چې د افغانستان له ډېرو مشهورو کلاليو څخه ده چې په بېلو بېلو ښارونو کې يې د خرڅلاو بازارونه تاوده دي.



**تمرين:**

١- ستاسې په سيمه کې کوم لاسي صنايع شته دي؟

٢- تاسې د هنرونو له کومې څانګې سره اشنا ياست؟

٣- له کوم افغاني هنر سره مينه او علاقه لرئ؟

٤- د خپلې خوښې د هنر د څانګې لپاره نوې نظريه وړاندې کولى شئ؟

# ۲۱ لوست

## دافغانستان له ملي موزیمونو سره آشنا کیدل

### د مزارشریف موزیم:

د مزارشریف موزیم اوږده مخینه او لرغونتیا لري. له هغه وخت څخه چې د حضرت علي کرم الله وجهه مقبرې ته پادشاه هانو سوغاتونه ورکول، د دې موزیم د جوړیدو سبب شول. دا تحفې او هدیې د روضې په یوه ځانګړې کوټه کې ساتل کیدې. د مزار موزیم سربېره پر قیمتي ډالیو، د مسکوکاتو او نه پیدا کیدونکو کتابونو په ځانګړې ډول د خطي نسخو کتابونه چې د هغې له ډلې څخه د قرآن عظیم الشان نسخې د قرآنکریم ځینې تفسیرونه لري چې له زیات ارزښت څخه برخمن دی. په خپله مبارکه روضه د معمارۍ د هنر یو لرغونی سبک دی. چې په مبارکو آیاتونو ښکلې شوې ده. دا مبارکه روضه یوه تاریخي لرغونی ودانۍ ده. پر دې موزیمونو سربېره، زموږ په ګران هېواد کې شخصي موزیمونه هم شته د نمونې په ډول سلطاني موزیم د یادولو وړ دی.

### د هرات موزیم:

په ۱۳۰۲ هـ.ش یا ۱۳۰٤ هـ. ش کال کې د هرات موزیم تاسیس شو او په۱۳۱۰ هـ .ش کال کې د هرات د ښار ښاروالۍ ته وسپارل شو او په ۱۳۱۲ هـ. ش کال د هرات د ښاروالۍ د مقام په حکم د پارك هوټل ودانۍ ته ولیږدول شو. په هغې کې چې کوم آثار وو، هغه د خلکو ننداري ته ایښودل شوي وو. اکثره آثار یې د ښاروالۍ له بودجې څخه اخیستل شوي دي. هغه آثار چې په هډه او بګرام کې د کیندنو په نتیجه کې لاس ته راغلي وو، د کابل د موزیم لخوا دسوغات او ډالۍ په ډول په ۱۳۲۵ هـ .ش کال د هرات موزیم ته سپارل شوي دي.

### د میمنې موزیم:

د میمنې د ښار په یوې تاریخي غونډۍ کې د ناځاپي کشفیاتو په نتیجه کې د غوریانو د دورې مسي سکې په لاس راغلي چې په ۱۳۳۵ هـ.ش کال کې یې د میمنې د موزیم د جوړیدو زمینه برابره کړه، چې په هغې کې لرغوني آثار او شیان وساتل شي. د میمنې موزیم د مدیرانو په هلو ځلو په کم وخت کې د ډېرو لرغونو او قدیمي آثارو څخه برخمن شوو او ننداره یې په ۱۳۳٦ هـ .ش کال کې پیل شوه. دا ننداري دومره په زړه پورې وې چې د میمنې خلکو خپل قیمتي او تاریخي آثار د تحفې او ډالۍ په ډول دې موزیم ته ورکړل.

## د منابعو فهرست


۱- غلام محی الدین شبنم، د ځوانانو او نویو ځوانانو د نقاشۍ د لوستلو لارښود ۱۳۸۰ کال
۲- د هنر د لوست لارښود لومړیو، دویمو او دریمو ټولګیو د ښوونکو لپاره کود نمبر ۵۳/٤، ۱۳۸۵
۳- د تجسمي هنرونو اصول، دکتور محمد حسین حلیمي.
٤- د تجسمي هنرونو اصول، فني او حرفوي کوډ ۲۱/ ۳۵۸، ۱۳۸٦ هـ.ش.
۵- له تجسمي هنرونو سره آشنا کیدل کوډ ۳۵۸/۳۷، ۱۳۸٤ هـ.ش.
٦- فني طراحي لومړی ټوک فني اوحرفوي کوډ ۹۲/ ۳۵۹، ۱۳۸۱ هـ.ش.
۷- هندسي نقشونه لومړی ټوک فني او حرفوي کوډ ٤۸۵، ۱۳۸٤ هـ.ش.
۸- د محلي انځور ګرۍ کارګاه فني او حرفوي کوډ ۷۷/ ۳۵۹، ۱۳۸٦ هـ.ش.
۹- د لاسي چاپ کارګاه فني او حرفوي کوډ ۲۰/ ۳۵۸، ۱۳۸٤ هـ .ش.
۱۰- د ایران د کاشي کاریو په هنر مقدمه محمد یوسف کیاني، فاطمه کریمي او عبد الله قوچاني و رضا عباس موزیم ۱۳٦۲ هـ.ش.
۱۱- د هنر دایره المعارف، روئیس پاکبار، د معاصر فرهنګ انتشارت.
۱۲- اسلامي هنر ارنست کونل.
۱۳- اسلامي هنر ژبه او بیان، تیوس بوکهارت.
۱٤ د ایران له لاسي صنایعوسره اشنا کیدل، لومړی ټوک فني او حرفوي کوډ ۳۵۹/۳۰، ۱۳۷۸، هـ.ش.
۱۵- د ایران د لاسي صنایعو په لور، د احمد لارام په اهتمام. د ایران د تهران د ملي بانک. انتشارت ۱۳۵٦ هـ.ش.
۱٦- علم په اسلام کې، د احمد لارام په اهتمام د تهران د سروش انتشارت ۱۳٦٦ هـ.ش.
۱۷- د خوشنو یسۍ هنر اول او دویم جلد، کوډ ۵/ ۲۰٤.
۱۸- په اسلامي فرهنګ کې د خط ښکلا، ان ماری شیمل د قدس ولایت انتشارت.
۱۹- د خط تاریخ او د افغانستان پخوانۍ لیکنې عبدالحي حبیبي.
۲۰- د ایران نقاشي، بازیل ګري د تهران د نوي عصر انتشارت ۱۳٦۹ هـ.ش.
۲۱- د ایران د نقاشي هنرته کتنه، ډکتر اکبر تجویدي. د فرهنګ او اسلامي ارشاد انتشارت تهران ۱۳۷۵ لومړی
۲۲- د هنر کارګاه ۱ جلد د پوهنځی نه مخکې کوډ ٤ ۵۹، ۱۳۸۷ هـ.ش.
۲۳- د هنرسیر په تاریخ ۲ جلد. د پوهنځی نه مخکې کوډ ۸/ ۵۹٤ ۱۳۸٦ هـ.ش.
۲٤- د افغانستان د تاریخ فشرده، فاروق انصاري، دمطالعاتو مرکزکابل ۱۳۸٦ هـ.ش.
۲۵- موزیم پېژندنه او په افغانستان کې د موزیمونو سیر، د ائنوګرامی دیپارتمنت او باستان پېژندنه د اجتماعي علومو پوهنځی، د کابل پوهنتون پوهندوی محمد رسول باوري کابل ۱۳۷۵ هـ.ش.